# طلوع افغان

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

د امتیاز څښتن: د کندهار اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسیس کال: ۱۳۰۰ لمریز، شنبه ۹/صفر المظفر/ ۱۴۴۵ هـ ق، ۴/وږي/ ۱۴۰۲ ل کال - ګڼه (۳۶)

Saturday-26-August-2023 Issue 36


**نبوي مرغلري**

رسول الله (ص) فرمایلي دي:

ژباړه: څوک چې غواړي روزي یې پراخه او عمر یې اوږد سي، نو له خپلوانو سره دي ښه سلوک او نېک چلند کوي.

«رواه البخاري»

## د ریاست الوزرا اداري مرستیال: اسلامي امارت به د خپلو امکاناتو په پام کې نیولو سره لازم اقدامات تر سره کړي

د ریاست الوزرا اداري مرستیال ملا عبدالسلام حنفي د پکتیا ولایت له یو شمېر دیني عالمانو او مجاهدینو سره په کتنه کې وویل، اسلامي امارت د خلکو ستونزو ته د رسېدنې په برخه کې هیڅ راز هڅې نه سپموي.

د ارګ له لوري په خپره سوې خبرپاڼه کې راغلي، چې په دې کتنه کې قاضي عبدالعزیز اخندزاده، مولوي ضیاء الرحمان او عبدالخالق اخند په هیواد کې د اسلامي نظام پر استقرار او د سرتاسري امنیت پر ټینګښت خوښي څرګنده کړه.

دوی د پکتیا ولایت د مجاهد پروره خلکو مېړانه او سرښندنه یاده کړه او ویې ویل، بدبختانه د مخکنۍ اداري په دوره کې د هیواد په ځانګړې ډول د پکتیا بیارغوني ته هیڅ راز پاملرنه نه ده سوې، له اسلامي امارت څخه یې وغوښتل چې د یاد ولایت د خلکو د انکشافي، ښوونې او روزنې او کارموندنې برخو ته جدي پاملرنه وکړي.

د خبرپاڼې له مخې، په ورته وخت کې د ریاست الوزرا اداري مرستیال مولوي عبدالسلام حنفي د اشغال ضد مبارزې پر مهال د پکتیا ولایت د مجاهدپروره ولسونو هڅې او سرښندنې وستایلې او زیاته یې کړه، د خلکو ستونزو ته رسېدنه، د اسلامي امارت له تعهداتو څخه دي او په دې برخه کې خپلې هیڅ راز هڅې نه سپموي.

مولوي حنفي پورته ذکر سوو وړاندیزونو ته په اشارې سره وویل، اسلامي امارت به د خپلو امکاناتو په پام کې نیولو سره لازم اقدام وکړي.

## د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال: اسلامي امارت له نړۍ سره د سیاسي اړیکو نوی باب پرانیزي

د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال شېر محمد عباس ستانکزي په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د سیاسي استازولۍ (یوناما) له مرستیال مارکس پوتزل سره په کتنه کې وویل، اسلامي امارت غواړي نور په افغانستان کې د جنګ پاڼه واړوي او له نړۍ سره د ډیپلوماټیکو اړیکو نوی باب پرانیزي.

ستانکزي په دې کتنه کې د یو لړ سیاسي موضوعاتو تر څنګ، پر بانکي محدودیتونو، د کوکنارو د کښت او قاچاق د مخنیوي پر لارو - چارو او په ځانګړې ډول، د اقلیمي بدلون په تړاو هر اړخیزې خبرې وکړې.

د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال همدارنګه وویل، اسلامي امارت د خبرو له لارې د سته ستونزو حل ته ژمن دئ او له مقابل لوري څخه هم ورته هیله لري.

ستانکزي زیاته کړه، په افغانستان کې د کوکنارو د کښت کچه صفر ته راکښته سوې ۴مخ

## میرویس حوزوي روغتون ته د میاشتي ۴۷ میلیونه افغانۍ منظور سوې

په کندهار کې میرویس حوزوي روغتون ته هره میاشت ۴۷ میلیونه افغانۍ منظور سوي دي.

سور صلیب چې مخکې یې میرویس حوزوي روغتون حمایه کاوه، په دې وروستیو کې یې خپله همکاري له یاد روغتون سره ۴مخ

## د کښته میوند ولسوالۍ د ودانۍ جوړېدو چاري پیل سوې

کندهار والي حاجي ملا شېرین اخند، امنیه قوماندان مولوي سمیع الله حزب الله او د یو شمېر ولسوالانو په ملتیا د دوشنبې په ورځ کښته میوند ولسوالۍ ته ولاړی او هلته یې د یادې ولسوالۍ له پاره د ودانۍ جوړېدو په هدف د کج کاریز په سیمه کې د بنسټ ډبره کښېښووله.

کندهار والي وویل، د مشرتابه د خاصې پېرزوینې له امله د دغې ولسوالۍ او سېدونکو ته د دوهمه ولسوالي هم منظور سوه، تر څو خلکو ته یې پر وخت خدمات تر سره سي.

د کښته میوند ولسوال حافظ سعید د ولسوالۍ له پاره د ودانۍ پر جوړېدو خوښي وښووله او ویې ویل، په یاده ولسوالي کې لویه مدرسه، جامع، بازار او ښارګوټې جوړول هم په پلان کې دي.

## د کندهار ښار د حضرت جي بابا پر څلور لاري منار جوړېږي

په کندهار ښار کې د حضرت جي بابا پر څلور لاري د دري نیم میلیونه افغانیو په لګښت منار جوړېږي.

د یاد منار د جوړېدو مراسم د چهارشنبې په ورځ جوړ سوي وو، چې د پرانستنې پر مهال یې کندهار ښاروال حاجي نعمت الله حسن وویل، یاد منار د افغان ۴مخ

## د نشه یي توکو دوه قاچاق کوونکي نیول سوي دي

په کندهار کې د نشه یي توکو دوه تنه قاچاق کوونکي نیول سوي دي.

د کندهار ولایت امنیې قوماندانۍ ویاند حافظ صابر ویلي، د سپین بولدک ولسوالۍ امنیتي ځواکونو دوه تنه د نشه یي موادو قاچاق کوونکي نیولي دي.

د صابر په وینا، له نیول سوو کسانو سره نیم کېلو ایف او درې کیلو چرس نیول سوي دي.

د یادونې وړ ده، چې د امنیتي ځواکونو د هڅو په پایله کې نشه یي مواد او مجرمین نیول کېږي، چې پر امنیتي حالت یې ډېر مثبت تاثیر کړی دئ.

## د کندهار پوهنتون له مسؤلینو سره لیدنه تر سره سوله

د افغانستان اسلامي امارت د لوړو زده کړو سرپرست وزیر شیخ مولوي ندا محمد ندیم کندهار ته د رسمي سفر په ترڅ کې، د کندهار پوهنتون له مسئولانو سره د چهارشنبې په ورځ ناسته وکړه.

د لوړو زده کړو سرپرست وزیر وویل، د هیواد د ځوان نسل سالمه روزنه زموږ او ستاسو ۴مخ

## د ۸۸ میلیونو افغانیو په لګښت ۵ پروژې ګټې اخیستنې ته وړاندې سوې

په لوګر کې د څه باندې ۸۸ میلیونو افغانیو په لګښت ۵ پروژې ګټې اخیستنې ته وسپارل سوې.

د لوګر ولایت په مرکز پل علم سر بېره، محمد آغه او خروار ولسوالۍ کې د څه باندې ۸۸ میلیونو افغانیو په لګښت ۵ پروژې ګټې اخیستنې ته وسپارل سوې.

هغه مراسم چې په همدې موخه د محمد آغې ولسوالۍ اړوند ده نو سیمه کې نیول سوي وو، چې په کښې د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال شېر محمد عباس ستانکزي، د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال مولوي صدر اعظم عثماني، د اقتصاد وزارت مالي مرستیال مولوي محمد عالم جمیل، د صنعت او سوداګرۍ وزارت مرستیال مولوي قدرت الله جمال، د اقتصادي کمېسیون ۴مخ

## د حقوقو او سیاسي علومو له پوهنځي ۹۷ تنه فارغ سول

د کندهار له دولتي پوهنتونه ۹۷ تنه د حقوقو او سیاسي علومو له پوهنځي څخه فارغ سول.

د کندهار پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو له پوهنځي څخه ۹۷ تنه محصلان تر څلور کلنو زده کړو وروسته فارغ سول، چې د دسه شنبې په ورځ مراسم په یو خصوصي سالون کې یې مراسم جوړ سوي وو، چې په کښې د کندهار پوهنتون رئیس مولوي اکرم شاه عاصم، د کندهار د بهرنیو چارو رئیس عبدالشکور حقاني، استادانو، علماء کرامو او د فارغ ۴مخ

## د فوټبال ۱۷ کلنو ملي لوبډلي ایران ته ماته ورکړه

د افغانستان د فوټبال د ۱۷ کلنو ځوانانو ملي لوبډلي ایران ته دوه د یو په وړاندې ماته ورکړه.

دغه سیالي چې تېره ورځ د مرکزي آسیا یا کافا اتلولیو په ترڅ کې تر سره سوه، افغانستان د لوبې په لومړۍ او دوهمه نیمایي کې یو - یو ګول تر سره کړ او په دې سره یې د ایران پیاوړي لوبډلي ته دوه د یو په وړاندې ماته ورکړه.

د بل خبر له مخې د کندهار په ۲۰۵ - البدر قول اردو کې د ۴مخ

## مناسب معاش د کارکوونکو او کارفرما دواړو په خیر دئ

**بریالی "فیضي"**

که کارکوونکو ته مناسب او د دوی د ضرورتونو مطابق معاش ورکړل سي، خیر یې دواړو ته رسېږي، یو خو به د کارکوونکي اقتصادي ستونزې تر ډېره حده هواري سوې وي او کارکوونکی به د زړه له اخلاصه دنده اجرا کوي، بې له دې چې د خپلې کورنۍ د نفقې په اړه ذهنًا ناآرامه وي. بله ګټه یې د کارفرما یا هغه ارګان ده، چې یاد کارکوونکی یې په کار ګمارلی، دا ځکه چې دغه کارکوونکی په پوره اخلاص دندې ته ژمنتیا ښیي او د اقتصادي ستونزو له امله رشوت او دوکې کولو ته نه اړ کېږي.

د حضرت عمر (رض) په حکومت کې د مسئولینو د دیانتدارۍ او رښتینولۍ د قائم پاته کېدلو له پاره ډېر غوره اصول دا اختیار کړل سوي ول، چې تنخواګانې به ډېرې زیاتې مقررې وې. اروپا ډېره موده تر تجربې وروسته دا اصول زده کړي دي. لېکن آسیایي سلطنتونه تراوسه پورې په دې راز نه دي پوهېدلي، چې له همدې امله رشوت او دوکه د آسیایي سلطنتونو ځانګړتیا ګرځېدلې ده.

د حضرت عمر (رض) په زمانه کې سره له دې چې ژوند ډېر اسانه او پیسې ډېرې قیمتي وې، خو بیا هم تنخواګانې ډېرې زیاتې وې. د والیانو تنخواګانې به تر (۱۰۰۰) زر دیناره پورې وې او د غنیمت له تقسیم څخه چې به څه ورکول کېدل، هغه د دې څخه جلا ول، د حضرت معاویه (رض) میاشتنی معاش زر دیناره وې.

هو! د یو کارمند له پاره تر ټولو اړینه خبره داده، چې باید اخلاصمند او تقوادار وي، بې له دې چې شخصي نفع په نظر کې ونیسي، باید د اداري په ګټه کار وکړي، خو دا چې اقتصادي اړتیا یې په نظر کې ونیول سي، دا بیا د همدې اداري مسئولیت دئ، چې باید توجه ورته وکړي.

که چیرې یوه اداره کارکوونکي ته د ژوند د ضرورتونو مطابق معاش ور نه کړي، ډېر منفي عواقب درلودلای سي. مثلاً: کارکوونکی ښایي د اقتصادي ستونزو په خاطر وظیفه ترک کړي، چې په دې سره به یادې اداري یو تکړه او مسلکي کارمند له لاسه ورکړی وي، یا ممکن کارمند د دې له پاره چې اقتصادي ستونزې یې حل سوې وي، اختلاس، رشوت، دوکې او یا داسې نورو ناوړه چارو ته لاس اچولی وي، چې په دې سره د اداري حیثیت تر سوال لاندې راتلای سي.



## د طلوع افغان خبري

## دوطني توليداتو کيفيت ته دي پاملرنه لا زياته سي

زموږ په ګران هيواد افغانستان کي د خوراکي او غير خوراکي توکو په زيات شمېر فابريکې فعالي دي، چي هره ورځ يې توليد بازار ته وړاندي کېږي او آن ځيني کورني توليدات بهرنيو هيوادونو ته هم صادرېږي.

د افغانستان اسلامي امارت مسئولينو هم د کورنيو توليداتو د ودي له پاره هڅه کړې ده، چي مناسب چاپېريال مساعد کړي او له خلکو يې غوښتي، چي د بهرنيو توليداتو په نسبت، کورنيو توليداتو ته لومړيتوب ورکړي.

د افغانستان اسلامي امارت د زعيم امير المؤمنين شېخ صاحب حفظه الله د وروستي فرمان په يوه برخه کي ټولي امارتي اداري مکلفي سوي، چي د کورنيو توليداتو څخه استفاده وکړي.

د دې څخه دا معلومېږي، چي شېخ صاحب حفظه الله د کورني توليد ودي ته په ډېر جدي ډول متوجه دئ.

د کورني توليد د ودي له پاره يوه بله اغېزناکه لاره داده، چي د کورنيو توليداتو د کيفيت د څارلو له پاره يو خپلواک کمېسيون جوړ کړل سي، ترڅو په دې برخه کي هم لا شفافيت رامنځته سي، د وطني توليداتو کيفيت چي هر څومره سمېږي، هغومره د هيوادوالو باور پر زياتېږي.

هغه هيوادونه چي پرمختللي دي يا مخ پر وده دي، ټول په دې هڅه کي دي، چي د وطني توليداتو کيفيت ورځ تر بلي لا بهتر کړي، د صنعت له اړخه پر ځان بسيا و اوسي او د نورو هيوادونو له احتياجه ځان خلاص کړي. دغه هيوادونه په دې هڅه کي دي، چي خپل کورني توليدات د نړۍ تر هر کونج پوري ورسوي، همدا لامل دئ، چي د خپلو توليداتو د کيفيت څارته ډېر کلک متوجه دي.

که زموږ د کورني توليداتو کيفيت ښه وي، نو پر هيوادوالو سربېره، د نړۍ د نورو هيوادونو سوداګر به هم دغه افغاني توليدات د خپلو هيوادونو اوسېدونکو ته وړاندي کړي، ځکه نو دا به ډېره ښه وي، چي د اسلامي امارت د اقتصادي کمېسيون په هڅو د کورنيو توليداتو د کيفيت د څار له پاره يو ځانګړی کمېسيون جوړ کړل سي، ترڅو د کورني توليداتو پر کيفيت باندي د خلکو باور لا زيات سي، چي ورسره سم به کورني توليدات لا ډېره وده وکړي.

اداره

## د خصوصي پوهنتونونو شتون؛ د ولسونو له پاره قوي فرصتونه!



نعمت الله "شاکر"

په هر هيواد کي د خصوصي پوهنتونونو شتون، د ولسونو له پاره قوي فرصتونه دي، چي خلک بايد عظيمه استفاده ځني وکړي. له يوه اړخه پر دولتونو هغه فشارونه کمېږي، چي خلکو ته د لوړو زده کړو خدمتونه عرضه کړي او له بله اړخه په مختلفو وختونو کي د خصوصي سکټور له خوا د دغو خدماتو عرضه ټولو خلکو ته دا چانس په لاس ورکوي چي په فارغو وختونو کي لوړي زده کړي حاصلي کړي. بله دا چي زيات خلک د استاد، اداري کارمند او خدماتي کارمند په صفت په کښي مصروفېږي.

بله دا چي د پيسو په ذريعه د علم حاصلول د علم ارزښت نور هم ډېرولای سي.

د خصوصي سکتور له خوا د لوړو زده کړو د خدماتو عرضه، دغه او دې ته ورته خورا زيات نور فرصتونه هم لري، خو له بده مرغه چي دلته يا هغسي استفاده نه ده ځني سوې، چي بايد سوې وای او يا هم د اکثرو محصلانو او ځينو مؤسسو له خوا سوء استفاده وسوله.

اکثره محصلان د زده کړي پر ځای، د اسنادو له پاره کانکور ورکوي، د لږ شمېر محصلانو پرته نور محصلان يا پوهنتون ته منظم نه ورځي يا درس نه وايي.

ځيني مؤسسې هم د لوړو زده کړو د خدماتو د عرضې پر ځای، د عوايدو روحيه لري، نو د کيفيت پر ځای کميت ته ګوري، چي زيات محصلان فارغ کړي.

يادونه: که د محصلانو قوي روحيه او د عالي تحصيلاتو د مؤسسو له پاره نظارتونه او پلټني قوي نه سي، ممکن دغه ناوړه استفاده نوره هم زياته سي.

د ښوونځيو فارغانو!

په راتلونکو څو ورځو کي د خصوصي لوړو زده کړو مؤسسو کانکورونه دي، راسئ له دغه عظيم فرصت څخه استفاده وکړئ، نوملیکني وکړئ، ټولګيوال مو هم مجبور کړئ، چي راسي او کانکور ورکړي. وروسته په ډېر قوي هوډ او استقامت خپلي سويې لوړي کړئ!

د خصوصي لوړو زده کړو مؤسسو مسئولينو!

ستاسو دغه ستر خدمت به اوسني او راتلونکی نسل هيڅکله هېر نه کړي، چي په داسي سکتور کي مو خپل امکانات او شتمنۍ لګولي دي، چي د ولس عزت او ارتباط ور سره تړلی دئ، نو راسئ! دغه عظيم خدمت ته نور هم کلک هوډ وکړئ، د څو غير منظمو محصلانو په ساتلو او فارغولو سره خپل دغه درونداو عظيم خدمت مه داغداره کوئ!

له دولت او ولس سره پر خپلو هغو تعهداتو ودرېږئ، چي په شفاف ډول به د ښه کيفيت لرونکو لوړو زده کړو خدمات عرضه کوئ!

## د ملکيت د امنيت اړوند حقونه

ترتيب کوونکی: پوهيالی مجيب الرحمن "واحدي"

اوله برخه

سريزه: لکه څرنګه چي څرګنده ده، پر قضايي امنيت سربېره، مالي امنيت هم د اتباعو له اساسي حقوقو څخه شمېرل کېږي. له مالي امنيت څخه مطلب د دولت او نورو اشخاصو له تېري د اتباعو د مال او شتمنۍ مصئونيت دئ. دا تېری کېدای سي په ځينو وختونو کي په ډېرو رسمي بڼو او حتی قانوني لکه: د شتمنۍ او جايداد مصادره کول او يا هم په غير قانوني بڼو لکه: سرقت او دوکه عملي سي.

د مالي امنيت له حقه د برخمن کېدلو په اړه د پام وړ ټکي دادي چي ډېر هيوادونه د شتمنۍ له ټولولو سره د مبارزې او د عمومي فقر د له منځه وړلو له پاره د هڅو تر نامه لاندي او د ايډيولوژيکو بنسټونو پر اساس، د خپل حکومت په ساحه کي د اشخاصو د شتمنيو او جايدادونو په مصادره کولو لاس پوري کوي، بې له شکه چي د دې ډول اقداماتو په نتيجه کي د پيدا سوي اقتصادي بې اطمينانۍ اغېزې د لاس ته راغلي سود او ګټو څخه ډېري زيان رسوونکي دي. په همدې دليل چي د دولت له بنسټيزو دندو څخه يو هم د اقتصادي امنيت ټينګښت دئ، چي «دولت په برابري او د هيواد په ټولو برخو کي د متوازني پراختيا پر بنسټ د يوې هوسا او پرمختللي ټولني په جوړولو مکلف دئ.»

اصلي پوښتنه: د مالي امنيت اړوند حقوق څه شی دي او څنګه ساتل کېږي؟

د مثبت جواب تر لاسه کولو له پاره په لاندي ډول بحث کوو.

د حقوقو د علم په وېش کي د مالي حقوقو موقف:

عمومي حقوق: عبارت د هغو قواعدو او مقرراتو څخه دي چي د يوې ټولني سازمانونه او خپلمنځي مناسبات تنظيموي، يعني د دولتي ادارو او سازمانونو او همدارازد ټولني د شخصي ادارو ترمنځ، دا ړيکو تنظيم کولو پوري اړوند مقررات شامل دي او د هغوی د حقوقو او منافعو ملاتړ او دفاع کوي.

خصوصي حقوق: د هغو لارښودو، قواعدو او مقرراتو محتوا او منځپانګه ده، چي د افرادو خصوصي او خپلمنځي مناسبات پرته له دې چي د هغوی شغل په پام کي ونيسي، له بېلابېلو لارو يې تنظيموي.

په دې کي شک نسته چي مالي حقوق د عمومي حقوقو د څانګي څخه دي، ځکه چي د هغو هره برخه، وضعيت او مسايل په دولت پوري اړه لري او په يوازي توګه موږ نه سو کولای، هغه اړيکه په پام کي ونيسو چي د ماليه ورکوونکي او ماليه اخيستونکي ترمنځ، رامنځته کېږي، يعني په دې ځای کي د دولت او افرادو ترمنځ مستقيمه اړيکه موجوده ده.

د مالي حقوقو تعريف: مالي حقوق هغه مالي امتيازات دي چي اقتصادي ارزښت لري او په دې معنی دا د يو شخص د شخصي ملکيت يوه برخه ګڼل کېږي.

د مالي حقوقو ډولونه:

الف – عيني حق: پر مشخص مال د يو شخص مستقيم واک او تسلط دئ، لکه: د يو ځانګړي کور مالکيت حق.

ب – ديني حق: دا د بل شخص په وړاندي د يو شخص واک او امتياز دئ، چي له مقابل لوري څخه څه غواړي، ديني حق ته، شخصي حق هم وايي، د عيني حق ښه والی پر ديني حق د تعقيب او تقدم له جملې څخه دي، په دې معنی چي د حق څښتن د موضوع د عينيت په لحاظ، له هر شخص څخه موندلای سي، د هغه استرداد ځني وغواړي او په ګټه اخيستنه کي تر هر چا مخکي سي.

د يادوني وړ ده، چي د حقوقو لومړني او تر ټولو بشپړ ډول اصلي عيني حقوق دي، چي د مالکيت اړوند، حقوق ګڼل کېږي. په دې باره کي د مدني قانون ۴۸۵ مه ماده داسي صراحت لري:

عيني حق د عين په ذات د شخص د داسي مستقيمي سلطې څخه عبارت دي، چي د قانون په وسيله ورکول کېږي، چي دا حقوق د مدني قانون د ۴۸۶ مادې پر اساس، د اصلي عيني او تبعي حقوقو پر دوو ډلو وېشل کېږي. نور بيا...

## د يهودانو دسيسې

ليکوال: محمد يحيی خان

ژباړه: سميع الله "دراني"

پنځمه برخه

د يوشع (ع) آخري تنبيه:

د اهل مصرو غلامۍ د بني اسرائيلو ذهن داسي خراب ور جوړ کړی و، اندازه يې د دې خبري څخه معلومېږي، چي د مصر څخه تر وتلو ۷۰ کاله وروسته

يوشع (ع) په يوه ناسته/غونډه کي بني اسرائيلو ته په خطاب کي وويل: "د الله (ج) څخه وېرېږئ! تاسو په ښه نيت او صداقت د هغه عبادت وکړئ، د دې بتانو څخه ليري و اوسئ، کوم چي ستاسو پلرونو يې د درياب هغي غاړي ته په مصر کي عبادت کاوه. صرف د الله (ج) عبادت وکړئ! که چيري تاسو ته د الله (ج) عبادت بد معلومېږي، بيا تاسو ته اختيار دئ، د نن څخه چي د هر چا عبادت کوئ، خو ما او زما کورنۍ به د يو الله (ج) عبادت کوو".

د دې تقرير څخه اندازه معلومېږي چي ۴۰ څلوېښت کاله د موسی (ع) په دعوت او ۲۸ اته ويشت کاله د يوشع (ع) د دعوت با وجود، دغه قوم د خپلو ځانونو څخه هغه اثرات نه و ايستل، کوم چي د فرعونيانو په وخت کي د دوی په هر رګ کي ننوتلي وو.

د فلسطين تر فتحي وروسته:

د حضرت موسی (ع) تر وفات وروسته کله چي بني اسرائيل فلسطين ته داخل سول، نو دلته يو څو محدود قومونه مېشت ول، حتی اموري، کنعاني، فرزي، حوي، يبوسي، فلستي او يو څه نور.

دوی په بدترين شرک باندي اخته ول، ټول خدايي يې د ډېرو معبودونو پر بت ور پاته ول، د دوی د ښځو او نرو معبودانو طرف ته داسي ذليل اوصاف او اعمال منسوب دي، چي په اخلاقي لحاظ بد کرداره انسان يې هم نه خوښوي، په دوی کي د کوچنيانو د قربانۍ عام رواج و، د دوی عبادتځای د فحاشۍ او زنا اډې وې، ښځي يې په عبادتځايونو کي کښېنولي وې او بدکارۍ يې په عبادت کي شامل ور سره کړي وې. په تورات کي د حضرت موسی (ع) په ذريعه د دغو قومونو په سلسله کي کومه لارښوونه چي بني اسرائيلو ته سوې وه، په هغو کي خاص – خاص ويل سوي وو، چي دغه قومونه نه اصلاح کېږي، د دې له پاره تاسي دوی مړه کړئ، له دوی څخه د فلسطين مځکه پاکه کړئ او د هغوی څخه د اوسېدلو سره د دوی اخلاقي او عقيدوي خرابيو اخته کېدلو څخه پرهېز وکړئ، لاکن د بني اسرائيلو په فلسطين کي تر داخلېدو وروسته، دغه هدايات شاته او مخ ته کړل، هغو يو متحد سلطنت جوړ نه کړ، ټولو د قوم ګلوۍ په خاطر، هري قبيلې دا خبره خوښه کړله، چي فتحي سوي سيمي يوه – يوه حصه کړي او سره جلا سي، دغه ډول د فلسطين مختصره سيمه د بني اسرائيلو پر دغو قبيلو تقسيم کړل سول:

۱ – بني يهوداه. ۲ – بني شمعون. ۳ – بني داني. ۴ – بني يمين. ۵ – بن افرائيم. ۶ – بني روبن. ۷ – بني جد. ۸ – بني منسي. ۹ – بني اشکار. ۱۰ – بني زبولون. ۱۱ – بني تفتالي. ۱۲ –... ۱۳ – بني اشر. نور بيا...

# بررسی نوشیدن شراب یا خمر از نظر اسلام

ترتیب کننده: پوهیالی سمونیار همایون "وقار"

اوله برخه

شراب و مشروبات الکولی از جمله مواردی است، که در اسلام به صراحت خوردن آن نهی شده است.

در این سیمینار سعی شده است تا با استفاده از آیات شریف قرآن و روایات نقل شده از بزرگان دین به حرام بودن آن بپردازیم و با استفاده از یافته های علمی مضرات الکول، به علمی بودن دستورات دینی و از جمله شراب بپردازیم. هر چند الکول یک ماده یی آلی بوده، که دارای کالري قابل توجه در ساختمان خود است، ولی از نظر بیوشیمیایی و تغذیه‌ای تأمین کالری بدن از طریق الکول به هیچ وجه توصیه نشده و دارای مشکلات و عوارض عدیده ای است.

وقتی استعمال الکول در مقادیر بیش از ظرفیت بدن صورت گیرد، باعث مسمومیت شدید بدن خواهد شد و اتانول و یا متابولیت های آن در بافت های مختلف بدن تجمع پیدا کرده و موجب آسیب های شدید و در بعضی مواقع بر گشت نا پذیر خواهد شد.

مستندات فقهی بر نجاست مسکرات (خمر یا شراب):

برای اثبات نجاست خمر به دلایل گوناگون استدلال شده، که می توان آن ها را در سه دسته قرآنکریم، سنت، اجماع، عقل تقسیم نمود.

۱– قرآنکریم: خداوند حرام بودن خمر را به صورت تدریجی در ضمن آیات قرآن بیان نمود.

ابتداء آیه ۹۰ سوره مائده.

خداوند متعال می فرماید:

ترجمه: ای مؤمنان شراب و قمار و انصاب (بتان) و ازلام (تیر های مخصوص فال) پلید و عملی شیطانی است از آن پرهیز کنید تا رستگار شوید.

سنت (دلیل روایی): خمر اسمی است برای هر آنچه عقل را دچار اختلال کرده و آن را می پوشاند و می تواند هر نوع نوشیدنی باشد و هر نوشیدنی که زیاد آن مست کننده باشد، مقدار اندک آن نیز حرام است.

از ام المؤمنین عایشه روایت است، که رسول خدا در مورد شراب عسل سوال شد. پس در پاسخ فرمود: «هر نوشیدنی که مست کننده باشد، حرام است.»

فقهایی که قائل بر نجاست خمر هستند به آیه یی آخر استدلال کرده آند، این استدلال بر دو نکته استوار مترادف با نجاست است و یا حد اقل به معنای پلیدی است، که شامل نجاست "رجس" باشد.

اول– این که واژه ظاهری و شرعی می باشد.

دوم– آن که اجتناب به معنای دوری گزیدن از خمر می باشد.

مجازات شراب خوار: به حدودی که شارع برای جرایم مختلف در نظر گرفته است، نه چیزی افزوده می شود و نه چیزی از آنها کاسته می شود، که عبارتند از: حد زنا، قذف، سرقت، قطاع الطریق و حد باغیان و مجازات شراب خوار تعزیر است نه حد، چرا که حدی برای آن در قرآن و سنت ذکر نشده است و چون کسی که شراب خورده نزد صحابه آورده می شد او را با شاخه یی درخت خرما و کفش و مانند آن می زدند. و اگر حدی داشت ثبت و ضبط آن واجب بود مانند دیگر حدود.

شراب خوار در زمان رسول خدا حدود چهل ضربه شلاق می خورد و همچنین در عهد ابوبکر صدیق (رض) و چون شراب خواری در میان مردم افزایش یافت، عمر فاروق (رض) تعداد ضربه های شلاق را به هشتاد ضربه افزایش داد و بعد از مشورت با صحابه، مجازات شرابخواری را مجازات کم ترین حدود که حد قذف است، تعین نمود و اگر شراب خواری حدی مشخص در شریعت داشت، حضرت عمر (رض) و غیر او نمی توانست به آن بیفزاید، چراکه حدود غیر قابل تغیر می باشند.

بناءً بر این روشن شد، که مجازات شراب خوار تعزیر است نه حد.

۱– چون کسی با اختیار و آگاه به این مسئله که مقدار زیاد شراب مست کننده است، آن را بنوشد، بر مبنای حکم تعزیری چهل ضربه شلاق به وی زده می شود و امام می تواند تعداد ضربات را به هشتاد ضربه افزایش دهد و این در صورتی است که مردم نسبت به شراب خوار بی پروا باشند.

۲– چون کسی شراب بنوشد، برای بار اول چهل ضربه شلاق می خورد و در بار دوم نیز شلاق می خورد و همچنین در بار سوم و در بار چهارم امام می تواند او را زندانی کرده یا اینکه تعزیراً حکم قتل وی را صادر کند. تا اینکه بندگان از شر او در امان مانده و فساد و مفسدین ریشه کن شود.

۳– هر کس در دنیا شراب نوشیده و از شراب خواری توبه نکرده باشد، شراب آخرت را نخواهد نوشید، هر چند وارد بهشت شود و هر کس شراب نوشیده و مست شود، نماز چهل روز وی قبول نمی شود و اگر بمیرد و توبه نکرده باشد، وارد آتش می شود و اگر توبه کند، توبه اش پذیرفته می شود و هر کس شراب خواری را تکرار نکند، خداوند متعال در روز قیامت او را از عصاره یی اهل دوزخ می نوشاند.

ادامه دارد

# د ورزش روغتیایي ګټې

راټولوونکی: عبدالحی "رسولي"
د طب پوهنځي محصل

کله چي د ورزش لفظ واورو، په بې اختیاره ډول مو فکر خپلو ورځنیو فزیکي فعالیتونو ته متوجه کېږي، خو په اصل کي تر دې فعالیتونو ور ها خوا ځیني نور څه هم سته.

د شلو دقیقو له پاره پر ترېډمیل ځغاسته او یا هم په بې ترتیبه شکل سره د یو عادي وزن پورته – کښته وړل، یوازي ورزش نه دئ. ورزش یو د هغو مهمو موارد و څخه دئ، چي د ښه روغتیا لرلو له پاره یې باید په هدف ځان پوه کړو. ورزش پر فزیکي روغتیا سربېره، د رواني روغتیا د تأمینولو یو له مهمو موارد و څخه هم دئ. سربېره پر دې د ناروغیو د وقایې او مخنیوي په برخه کي هم خورا ښه رول لوبوي. دا او نوري ګټې یې خورا زیاتي دي، خو په دې علمي مقاله کي موږ د ورزش کولو دماغي او فزیکي ګټې او دا چي زیات او بې ترتیبه ورزش کوم عواقب لري، را نغاړو، چي دا به تاسو ته د ورزش کولو او ښې روغتیا لرلو په موخه یوه انګېزه در کړي.

–ورزش کول په خورا مؤثره کچه زموږ په دماغ کي د مهمو هورمونونو د افراز لامل ګرځي:

د ورزش په جریان کي د بدن په کېمیاوي تعاملاتو او میتابولیزم کي چټکوالی راځي، بدن مو د انډورفین په نامه کېمیاوي مواد آزادوي. انډورفین د بدن هر غړي ته مثبت سیګنالونه لېږدوي، چي دا موږ ته د ښه والي احساس راکوي او د اضطراب مخنیوی کوي. (Powers, Howley. 2018)

د دماغ پر فعالیتونو د ورزش عمده اغېزې عبارت دي له:

۱– د Nor-epinephrine سویه لوړوي، چي دا هورمون د فشارونو په مقابل کي دماغ ته د کار کولو قابلیت ور کوي.

۲– تشویش او د بېري احساس کموي.

۳– له احساساتي اړخه مو کنټرولوي.

۴– د عقلي زوال مخنیوی کوي.

(Hashmi. 2012)

له دماغي روغتیا ساتلو سره سم، د ژوندانه کیفیت لوړېږي او د زړښت د دماغي ناروغیو چي د هورمونونو او کېمیاوي موادو له کمښت څخه منځته راځي، مخنیوی کوي، لکه:

Alzheimer’s disease, Parkinson’s disease او نور. (Cadigiana. 2016)

لکه څرنګه چي پوهېږو، دماغ د بدن د ټولو ارادي او غیر ارادي فعالیتونو د کنټرول مرکز دئ، نو د ښه روغتیا لرلو په مورد باید دماغ تقویه سي، چي د دې تقویې یوازنۍ لاره همدا ورزش دئ. قدم وهل، د ورزشي کلبونو منظم تمرینونه او داسي نور هغه څه دي، چي د خپل وجود په اړه یو مثبت تصویر راکوي او پر نفس مو باور قوي کوي. د ورزش په جریان کي زموږ په دماغ کي د BDNF په نامه یو ډول پروټینونو سویه لوړېږي. دا پروټینونه د فکر کولو، زده کړي او تصمیم نیولو ځواک راکوي. د ورزش دماغي او فزیکي ګټې حیاتي دي او د دماغ د فعالیتونو د مؤثریت لامل ګرځي.

له بله اړخه فزیکي ځواکمنتیا هم نه یوازي دا چي په ثقیله کارونو کي مرسته راسره کوي، بلکي د بدن د غړو او سیسټمونو دندې هم متأثره کوي.

د ورزش د مختلفو ډولونو مغلق حرکتونه د دې باعث ګرځي، چي د بدن د غړو د کشش، قوت، زړه او تنفسي سیسټمونو ته د زیات فشار په وړاندې د تحمل وړتیا ور وبخښي. د بندونو کشش د دې لامل ګرځي، چي د بدن ټولو بندونو هر اړخ ته د حرکت قابلیت ور کړي. د هډوکو د ودې له درېدو سره سم، بندونه هم نوره وده نه کوي او د وخت په تېرېدو سره د شخوالي طرف ته ځي، چي مختلفي ناروغۍ زېږولای سي، لکه: Arthritis, Sprains او نور....(Park. 2019) خو ورزشي حرکات د دې لامل کېږي، چي د دې پدیدې مخنیوی وکړي او د بندونو عادي حرکتونه ثابت وساتي. د عضلاتو قوت د یو وار ډېر حرکت له امله د منځته راغلي قوې څخه عبارت دئ. صحتمند او ځواکمن عضلات د ټولو ورځنیو فعالیتونو د تر سره کېدو له پاره اړین دي، د کور د سودا له انتقال څخه نیولې، بیا د زینو تر ختلو پوري، دا ټول هغه څه دي چي په قوي عضلاتو لرلو سره په هوسایي تر سره کېدلای سي.

عضلات د بدن اسکلیټ په خپل عادي چوکاټ کي ساتي او دا عضلاتي انساج د انسان د بدن د ترکیب یوه زیاته برخه نیولې. سخت تمرینات بیا د انتي اکسیدانت انزایمونو د سویې لوړېدو او اکسیدانت فشار د لیري کېدو لامل کېږي. (Afzal & Jalal. 2019) دا کار عضلاتو ته تر زخمي کېدو وروسته، د ژر جوړېدو، بر قراره کېدو او نوروز خمونو رامنځته کېدو مخنیوی کوي، نو دا ټول په ګډه د یو فزیکي اړخه روغ انسان په برقراره کېدو کي رول لوبوي.

پر پورتنیو ګټو سربېره؛ د ورزش د ګټو تر لاسه کولو، پوهېدلو او خوښۍ احساس اخیستلو وروسته، انسانان په غیر ارادي ډول د تر حد زیات تمرین منفي عادت اخلي. د وخت په تېرېدو سره دا بې حده علاقمندي او مجذوبیت د خستګۍ لامل ګرځي او د ورزشي فعالیتونو په اړه منفي ذهنیت قوي کوي. تر حد زیات تمرین کېدلای سي، له خفیفو تاثیراتو نیولې حتی تر دې چي کس تر بستره ورسوي.

د بې حده تمرین بد عواقب هغه وخت ښکاره کېږي، کله چي د استراحت او تمرین ترمنځ، توازن خراب سي. کله چي په کافي اندازه خوب نه کوو او کالوري لرونکي غذاوي نه خورو، نور نو ورزش خپل روغتیایي ارزښت له لاسه ورکوي او د ناروغۍ طرف ته سرایت کوي. په دې حالت کي نو بیا انسان صرف د نظریاتو او تجربو اوربدلو او یو څه وخت له پاره د فعالیتونو څخه لیري پاته کېدو ته اړ کېږي. (Cadegiana. 2016)

تر ډېره حده دا بې ځایه عقیده، چي یوازي یووار د غیر صحي خواړو خوراک او یا یوه ورځ له کلب څخه پاتېدل ټولي خوارۍ عبث کوي، د ځوانانو علاقمندي او پر نفس اعتماد سوځي.

برعکس زیات د خوښۍ احساس او مجذوبیت د زیات تمرین له امله د رامنځته کېدونکو عواقبو مسئول ګرځي. په مجموع کي ورزش سخت دئ، خو د دې دماغي او رواني ګټې لکه د اضطراب کمول او پر ځان باور لوړول، دا عصابو له پاره مهم دي. د عضلاتو کشش، قوت، د زړه او تنفسي سیسټمونو تحمل، ټول د یو روغ بدن جوړولو په منظور حیاتي رول لري.

د علمي څېړنو پر اساس؛ د ورزش روغتیایي ګټې له زړه او رګونو نیولې، تر سیسټمونو ټول په ګډه سره د یو شخص په روغ ساتلو کي مهم رول لوبوي. ورزش نه یوازي له فزیکي اړخه، بلکي له ذهني اړخه انسان ورځنیو فعالیتونو ته چمتو کوي او د تفکر، زده کړي او تصمیم نیوني قوه یې په کار اچوي. د ورزش د ټولو ګټو یو ځای کېدل او ګډ تاثیرات یې هغه څه دي، چي دا خورا مهم ګرځوي، خو د ورزشي فعالیتونو سرعت باید په کراره – کراره وي او د استراحت او ورزش ترمنځ توازن ثابت وساتل سي، تر څو د خستګۍ طرف ته تمایل پیښ نه سي. که غواړئ چي خپل ځان له یو مثبت عادت سره آشنا کړئ او وخت ور کړئ، نو تر ورزش به مهم څه نه وي. پر پیاده لارو قدم وهل، یا د ورزشي ټیمونو غړیتوب اخیستل، یا په منظم ډول ورزشي کلبونو ته تګ؛ دا ټول هغه څه دي، چي په ژوند کي مو بدلون راولي. ورزش عام دئ او د هر چا له پاره ګټور دئ.

شعري او آدب

## د طلوع ځلانده ډیوه

## غزل

احمد خان "ارمان"

دا مځکي آسمانونه انسانان دي ثنا وایي
په سمه او په غرونو کي پېریان دي ثنا وایي

✱✿✱

خالق د ټول نړۍ یې دا دنیا دي پیدا کړې
ځنګلونو او باغو کي بلبلان دي ثنا وایي

✱✿✱

غني پروردګاره! رحمتونه دي بې شمېر دي
په لویو دریابونو کي ماهیان دي ثنا وایي

✱✿✱

څلورو کتابونو کي فرقان د دوی لارښود سو
سپېڅلي خلک ټوله مؤمنان دي ثنا وایي

✱✿✱

ملکي آسمانو کي اورېدلي مي دي داسي
په قبر کي د مدیني جانان دي ثنا وایي

✱✿✱

پیدا یو ستا په امر فنا کېږو ستا په امر
"احمد" په آذانو کي هم هر آن دي ثنا وایي

## غزل

محمد الله "عبرت"

منم چي درد یې راکړ وې منه فایده دا وښکو
ستا په ښو څېري زړه جوړ سو په شیره دا وښکو

✱✿✱

اول مي عشق په زړه د ننه کړ دوهم ځلي بیا
په خپل وجود باندي مي واغوستل څپه دا وښکو

✱✿✱

ستا د بېلتون درد پر دې غره دونه تاثیر وکړ چي
اوس یې له سترګو را روانه ده چینه دا وښکو

✱✿✱

زه دي قربان له سخاوته سمه ښکلې یاره!
له خپلي میني دي را وبخښل حصه دا وښکو

✱✿✱

څومره اسانه دي "عبرت" ته وروستۍ غېږه ورکړه
څومره اسانه دي تمثیل کړ له کیسه دا وښکو

## غزل

روبین "حسن"

موږ چي به وکړې بیا مو ځان سره ساتی انتخاب
کم اصلو خلکو به په ورځ کي بدلوی انتخاب

✱✿✱

هغو به هر څه ته د خپل زړه آئینه کي کتل
په دې خاطر به مي له خلکو پټوی انتخاب

✱✿✱

د رواجو په رنجو توري سترګي ګرځېدلې!
په پټو سترګو به یې ځان ته خوښوی انتخاب

✱✿✱

چي کومه ورځ به مي د هغه ننداره و نه کړه
په هغه شپه به مي تر ډېره یادېدی انتخاب

✱✿✱

که دا مني چي لور او زوی دواړه د خدای نعمت دي
نو خلک ولي خوښوي ځان ته د زوی انتخاب

✱✿✱

څومره بې وسه وي هر څه بې پټه خوله منله
پښتنو پیغلو به د پاڼ او پړانګ کوی انتخاب

✱✿✱

چا چي کولای د "روبین" له غزلونو څخه
کوریې ودان چي راډیو کي نشروی انتخاب

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.

ګرانو لوستونکو! ستاسو څخه په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

مسئول مدیر: بریالی "فیضي"

د تصحیح مسئول: بسم الله "غرني"

کمپوز او ډیزاین: نصیراحمد "صابر"

د مدیریت شمېره: ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳

د توزیع مدیریت شمېره: ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶

پته: علامه حبیبي واټ-اطلاعات او فرهنګ ریاست

د برېښنالیک پته: Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 Issue: 36 Established in 1300 Hijri

# افغان اعلانونه

## ډېرووونکي غواړي

د کندهار ګمرک ریاست اړوند:

یو باب د عریضې نویسۍ غرفه چې د سپین بولدک ولسوالۍ د ګمرک آمریت په داخل کې موقعیت لري.

محمد عیسی د عبیدالله زوی یې د میاشتې په مبلغ ۲۰۰۰/۰-افغانۍ په کرایه غوښتونکی سوی دئ. هر هغه څوک چې د یادې عریضې نویسۍ غرفې د کرایې د زیاتېدو خیال ولري، خپل غوښتنلیکونه دې د ۱۴۰۲ ل کال د وږې میاشتې د اولې نېټې څخه بیا د همدې میاشتې تر اوومې نېټې د سه شنبې تر (اوو ورځو) پورې دې د مستوفیت ریاست د املاکو لوی مدیریت ته وسپاري، شرطپاڼه کتلای سي تضمین نغداً او یاده د مزایدې داوطلبي د وږې میاشتې پر اتمه نېټه، د چهارشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې، د تعین سوي هیئت په حضور کې د املاکو په عمومي مدیریت کې تر سره کېږي.

## د اعتبار وړ نه دئ

وارث افغان وانیز شرکت، چې د جواز شمېره یې (D-04-550) رئیس یې عبدالوارث "احدي" د حاجي عبدالاحد "احدي" زوی او مرستیال یې حزب الله "ولسي" د غلام رسول زوی دئ، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته د اعتبار وړ نه دئ.

## اعتبار نه لري

خوشحال نوري برادران لمیټېډ چې د جواز شمېره یې (۶۲۳۴۸) رئیس یې محمد غني د محمد نبي زوی او مرستیال یې د عبدالنبي د محمد نبي زوی دئ، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته اعتبار نه لري.

## دورکي اعلانونه

یوه قطعه برېښنایي تذکره چې د ګل اندام "قاسمي"، د بسم الله انوري د لور او د محمد انور د لمسۍ په نامه ده، ورکه سوې. هر چا که پیداکړې وي، په هرات دروازه کې دې یې نعیمي عکاسخانې ته ور وړي.

یا دې د ټیلیفون په دې شمېره تماس و نیسي: 0703302560



یوه قطعه برېښنایي تذکره چې د رسول محمد، د حاجي غوث الدین د زوی او تاج الدین د لمسي په نامه ده، ورکه سوې ده. هر چا که پیداکړې وي، د ټیلیفون په دې شمېره تماس دي و نیسي: 0705608673

## د اېرګنک ۱۸ کېلو متره سړک بیا ورغول سو

په کندز ولایت کې د ۲۱۷ عمري او ۲۰۹ الفتح قول اردو له خوا د اېرګنک ۱۸ کېلو متره سړک بیا ورغول سو.

د اېرګنک سړک چې تخار، بدخشان او کندز ولایتونه د بلخ ولایت له مزار شریف سره نښلوي، د ۲۱۷ عمري او ۲۰۹ الفتح قول اردو له لوري تر بیا رغولو وروسته بشپړ او ګټې اخیستنې ته وسپارل سو.

د کندز-خلم سړک یا د اېرګنک لاره شمال او شمال ختیځو ولایتونو ته د رسېدلو تر ټولو لنډه لار ده، چې د سړک د خرابوالي له امله پر دې لاره د موټرونو تګ-راتګ کم وو، خو په دې وروستیو کې د ملي دفاع وزارت د خلکو ستونزو ته پاملرنه کړې او دغه لاره یې په بشپړه توګه بیارغولې ده.

د ۲۰۹ الفتح قول اردو د انجینرۍ مدیر مولوي عبدالمجید مبارز ویلي، له نېکه مرغه د کندز-خلم ۱۸ کېلو متره سړک تر بیارغولو وروسته ګټې اخیستنې ته سپارل سوی دئ.

له بلي خوا د ۲۱۷ عمري قول اردو ویاند مولوي اجمیر عمار ویلي، د کندز-خلم لاره چې شمال ختیځ ولایتونه له شمالي ولایتونو سره نښلوي، د مسافرو له پاره تر ټولو لنډه لار وه، چې بیارغول سوې ده.

په همدې حال کې د سیمي یو شمېر اوسېدونکو او موټر چلوونکو د ملي دفاع وزارت له دغه اقدام څخه د خوښۍ څرګندولو ترڅنګ، د دې سړک د خرابوالي یادونه وکړه او پر پخولو یې ټینګار وکړ.

باید وویل سي، چې دغه اقدام د ملي دفاع وزارت د لارښوونې سره سم، د ۲۱۷ عمري او ۲۰۹ الفتح قول اردو له لوري تر سره سوی دئ.

## له یو شمېر لېسو سره د کمپیوټرونو مرسته وسوه

د لوګر ولایت د پوهنې ریاست مسئولینو ویلي، د دې ولایت په مرکز او ولسوالیو کې له ۹ لېسو سره د ۴,۵ میلیونو افغانیو په ارزښت د کمپیوټرونو مرسته وسوله.

د پوهنې ریاست ویاند شاپور عرب باختر آژانس ته ویلي، دغه ۹۲ پایې کمپیوټرونه د پوهنې ریاست د ساینس او ښوونیزې ټکنالوژۍ مرکز له خوا د نهو لېسو د کمپیوټر خونو د فعالولو په موخه ورکړل سوي دي.

باید وویل سي، چې تر دې وړاندې هم د دیاد ولایت له ګڼ شمېر ښوونځیو سره د کتابونو او قرطاسیو مرسته سوې وه.

## (۱) مخ پاته: د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال: له نړۍ سره د سیاسي...

او په نشه یي توکو د روږدو کسانو درملنه پیل سوې، د نشه یي توکو پر پېر او پلور بندېز لګېدلی او له سرغړوونکو سره جدي اقدامات کېږي، کوم چې د نړۍ والې ټولنې په ګډون د دوی ګډ مسئولیت دئ.

هغه د یوناما له مرستیال څخه غوښتنه وکړه، چې د کوکنارو د بدیل کښت، د بانکي محدودیتونو په لیرې کولو او له اقلیمي بدلون سره د مبارزې په برخه کې خپلې مرستې و نه سپموي.

په ورته وخت کې په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د سیاسي استازولۍ مرستیال مارکس پوټزل د افغانستان اسلامي امارت د دې هڅو ستاینه وکړه او زیاته یې کړه، یوناما هڅه کوي له افغانستان سره د نړۍ والو د همکارۍ زمینه برابره کړي او پوټزل له اسلامي امارت سره د ګډ کار ژمنه وکړه.

## (۱) مخ پاته: میرویس حوزوي روغتون ته د میاشتي ۴۷ میلیونه...

بنده کړې وه او د روغتون چارې له ځنډ سره مخ وې.

کندهار والي حاجي ملا شېرین اخند د روغتون د ټول اړتیاوو د معلوملو له پاره هیئت وټاکئ او وروسته یې د اړتیاوو لیست د مشرتابه سره شریک کړ.

تازه عالیقدر امیرالمؤمنین شېخ صاحب حفظه الله د خپلې خاصې پېرزوینې پر اساس، میرویس حوزوي روغتون ته هره میاشت ۴۷ میلیونه افغانۍ منظور کړې، چې د مالیې وزارت له لارې به په یو ځانګړي کوډ کې د یاد روغتون له پاره د عامې روغتیا وزارت ته سپارل کېږي او د دې روغتون له پاره به درمل، روغتیایي تجهیزات، د کارکوونکو معاشات او دغه راز نور ټول د اړتیا وړ مواد د ولایت مقام، استخباراتو ریاست او عامې روغتیا ریاست تر رهبرۍ لاندې رانیول کېږي.

د عامې روغتیا رئیس ملا بسم الله باوري ویلي، یاد مبلغ د میرویس حوزوي روغتون ټولې اړتیاوې پوره کولای سي.

## (۱) مخ پاته: د کندهار پوهنتون له مسئولینو سره لیدنه...

مسئولیت دئ، د افغانستان اسلامي امارت رهبري او مشرتابه د لوړو زده کړو او عالي تحصیلاتو پرمختګ ته ژمن دي او تل په دې برخه کې د امکاناتو او اسانتیاوو د اماده کولو پر لارو-چارو کار کوي.

## (۱) مخ پاته: د ۸۸ میلیونو افغانیو په لګښت ۵ پروژې ګټې اخیستني...

کمېسیون د پلان او پالیسۍ رئیس مولوي روح الله شهاب، د ولایت مرستیال والي مولوي عنایت الله شجاع، ګڼ شمېر نورو مسئولینو، دیني عالمانو، مشرانو او ځوانانو ګډون کړی وو.

په لومړیو کې د لوګر ولایت د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رئیس مولوي سید امین هاشمي وویل، دغه پروژې چې د مرکز په شمول محمدآغه او خروار ولسوالیو کې پر ۱۷۰ جریبه مځکه ۱۶ زره مثمر او غیر مثمر نیالګي ایښوول او همدارنګه د ۱۰۷ کېلو متره کانالونو پاکول او ۲۰ جریبه مثمر باغ جوړول شامل دي، چې د خوړو نړۍوال سازمان په مالي ملاتړ، د ۹ میاشتو په موده کې بشپړ او د پلي کولو پر مهال یې ۲۰۰۰ کسانو ته کاري زمینه هم برابره سوې وه.

ورته مهال د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال وویل، له وچکالیو سره-سره، د تېرو دوو کلونو په موده کې د همکارو مؤسسو په مرسته، د کرهنې او مالدارۍ، د چک ډېمونو د جوړولو په برخو کې ښه پرمختګونه سوي او سږ کال د غنمو په حاصلاتو کې هم کابو ۳۰ سلنه زیاتوالی راغلی دئ.

په همدې حال کې د بهرنیو چارو وزارت سیاسي مرستیال د یادو پروژو مبارکي ټولو ولسونو ته وړاندې او زیاته یې کړه، تر څو لسیزو وروسته موږ ټول په آرامه فضا کې د یو شمېر پرمختګونو شاهدان یو.

د ستانکزي په قول: "د لوګر تاریخي ولایت، د علماوو او مبارزینو کور دئ، د جهاد دروازه ده، دې خاوري لوېشت-لوېشت قرباني ورکړې، لوی-لوی کانونه او ښه جغرافیایي موقعیت لري."

هغه له اړوندو وزارتونو غوښتنه وکړه، چې د لوګر د بیارغولو برخې ته پوره پاملرنه وکړي.

ستانکزي وړاندې وویل، اسلامي امارت په کمو امکاناتو د خپل ولس په خدمت او د هیواد آبادولو او همدارنګه د کرهنې او سوداګرۍ په برخو کې ښې لاسته راوړنې لري.

د ولایت مرستیال والي وویل، اوس د وطن د آبادۍ له پاره وخت را رسېدلی، موږ له مرکزي ادارو څخه غوښتنه کوو، چې د لوګر د ښېرازۍ له پاره چټک ګامونو پورته کړي.

د مشرانو او بزګرانو په استازیتوب استادفزیر احمد عثماني له ترسره سوو پروژو مننه وکړه او ترڅنګ یې د کرهنې، د اوبو د نشتون په برخو کې یو لړ وړاندیزونه شریک او هم یې د بزګرانو د تولیداتو له پاره د بازار موندنې غوښتنه وکړه.

د یادونې وړ ده، چې په نژدې راتلونکي کې به هم په لوګر کې د یو ستر تحقیقاتي فارم د جوړولو چارې پیل سي.

## (۱) مخ پاته: د حقوقو او سیاسي علومو له پوهنځي ۹۷ تنه...

سوو محصلانو د کورنیو غړو برخه اخیستې وه.

د کندهار پوهنتون رئیس فارغ سوو محصلانو ته د مبارکۍ تر څنګ وویل، اوس الله (ج) ټولو ته د ښه خدمت کولو زمینه برابره کړې، راسئ ځوانانو ټول په ګډه د نظام، هیواد او ټولنې پرمختګ ته ملا وتړو او ټول یو او بل ته د ورورولۍ لاسونه سره ورکړو.

وروسته د بهرنیو چارو رئیس د کندهار پوهنتون د ټولو استادانو هڅې وستایلې او له فارغ سوو ځوانانو څخه یې وغوښتل، چې د دې مظلومو خلکو او هیواد امیدونه پوره کړي، د پردیو هیوادونو څخه راوګرځي، دلته په خپل هیواد کې د خپلو خلکو له پاره کار وکړي.

## (۱) مخ پاته: د حضرت جي بابا پر څلور لارې منار...

بېسیم مخابراتي شرکت په مالي ملاتړ د درې نیم میلیونه افغانیو په لګښت جوړېږي، چې چارې به یې تر درو میاشتو پورې بشپړې سي.

## (۱) مخ پاته: د فوټبال ۱۷ کلنو ملي لوبډلي ایران ته ماته ورکړه...

د افغانستان د فوټبال د ۱۷ کلنو ځوانانو ملي لوبډلي ایران ته دوه د یو په وړاندې ماته ورکړه.

دغه سیالي چې تېره ورځ د مرکزي آسیا یا کافا اتلولیو په ترڅ کې تر سره سوه، افغانستان د لوبې په لومړۍ او دوهمه نیمایي کې یو-یو ګول تر سره کړ او په دې سره یې د ایران پیاوړي لوبډلي ته دوه د یو په وړاندې ماته ورکړه.

د بل خبر له مخې د کندهار په ۲۰۵-البدر قول اردو کې د فوټبال ټورنمنټ پای ته ورسېدی.

د استقلال په نامه یاد ټورنمنټ چې ۱۲ لوبډلو په کښې برخه اخیستې وه، د سعدالله افغان لوبډلي په لومړي مقام خپلولو سره پای ته ورسېدی.

پای لوبې ته یې د بدني ورزش او سپورټ رئیس حافظ محمود آغا بشر، د ځوانانو چارو آمر قاري حمدالله سعید، د کندهار د کرکېټ بورډ امر حافظ جمیل احمد منصوري او نور مسئولین ورغلي ول.

د لوبې تر پای ته رسېدو وروسته ورغلو مېلمنو او لوبغاړو ته بېلابېلې تحفې او انعامونه ورکړل سول.